# پښتونه ! رحمت شاه (سایل)

داژبه که دي شته نه کړه ورکېږي
به پښتونه
لوټ کيږي به پښتونه تالاکېږي به
پښتونه
دا لاره داحساس او
دعظمت درنالار ده
په بله هره لار چې ځې شوکېږي
به پښتونه




د برالوت دپاره کره پیدا
خپلې ورزې
چې الوزې د سوال په پرو لوېږي
به پښتونه
چې خپل سپرلی دي خپلې مينې خاورې له راو
ټوکېږي به پښتونه او
دوړېږي به پښتونه
قامونه په تاريخ
تهذيب په ژبه پايي
چې دا نه لري مري به
فناکېږي به پښتونه
داپوله دغه پوله هـ
پوله پولې پرېږده
يوَه ژبه پيداکړه نو شته کېږي به
پښتونه
ستا خپله ژبه نه ده ستا قلم
پردی دی
په لاس کې به د نورو يې گډېږي
به پښتونه
احساس دکمترۍ به دي دغاړې غړوندی
وي
نسلونه به دي خوار گرځي شرمېږي به
پښتونه
دانن دَور خو دَور د هنر

اود تخليق دى
دا دوه توكي چې نه لري ژړېږي
به پښتونه
دناستې او ولاړې او ټوپك
مشغلې پرېږده
كه ځان شته كول غواړې روانېږې به
پښتونه
گونگۍ ژبه گويا كه دې نغمو د (سايل)
نه كړه
اوس درې ځايه يې دولس ځايه كېږې به
پښتونه

## ژبه (Language)

**ژبه** د يو لړ تړوني ( اتفاقي) غږيزو او اوريزو پيلامو (نښو) يو غونډال (سيستم) دى چې هره يوه يې زموږ د يوه ذهني انځور ښكارندويي كوي. دغه انځورونه چې د يوې ټولنې وگړي يې په يوځايي ډول د خپلمنځي پوهاوي اوخبراوي (communication) لپاره پر ژبه راوړي او خبرو اترو يا وينا ( conversation or speech ) ته رښتيا ينه بښي،د اړوندې ټولنې د غړو د اندونو، واندونو، ولولو، انگېرنو،ننگېرنو،پارېدنو،ځاځونو، اندېښنو،گيلو، غوښتنو،پوښتنو، غبرگونونو،موخو،وېلاړونو،خوښيو،كړ و وړو او نورو راز راز پړني او رواني اكرو بكرو... څرگندويي كوي او د چاپېريال او مهال څېزونه، ښكارندې، پېښې،ښه او بد... را اخلي. په بله وينا: ژبه د پوهاوي راپوهاوي وسيله ده.د ژبې په مټ خپل اندونه،واندونه (خيالونه)، ولولې، هيلې او غوښتنې سيده يا ناسيده، عمودي يا افقي نورو ته لېږدولاى شو. خبرې اترې يې سيده او ليكنه يې ناسيده ډول دى.كه بيا يې هممهالو ته لېږدوو،

افقي او که راتلونکو پښتونو (نسلونو) ته یې لېږدووو، عمودي بلل کېږي.

همدارنګه ژبه د انسانانو ترمنځ د پوهولو او پوهېدلووسیله ده،ژبه موږ ته اجازه راکوي چې له فکر نه خبرشو ، نو په دې سبب د انسانانو ترمنځ ګډ کار یقیني کېږي ، د ژبې په مرسته د پخوانیو خلکو په سلګونو کالونو پخوانی تجربې تر لاسه کېږي او له یو نسل څخه بل نسل ته انتقالېږي ، ددې کېدون نښته چې له ژبې پرته خپل فکر نورو ته ولېږو. له بلې خوا دا هم باید په پام کې ونیول شي چې همدا فکر او فکري هڅې دي ،چې انسانان له نورو ژویو څخه بېلوي.

پورته مو وویل چې د غږیزو او اوریزو نښو یوسیستم دی په دې مانا چې هره نښه یا علامه لکه دکاغذ پاڼه سره دوه نه بېلېدونکي مخونه لري: یو یې صورت، جوله، لفظ او یا ((دال)) او بل یې مانا، محتوا او یا ((مدلول)) او د دغو(دال او مدلول) ترمنځ تړاو((دلالت)) بلل کېږي.
په رښتینه یا واقعي توګه همدغه دلالت د ژبنی نښې قراردادیوالی راجوتوي.

د انسانانو ترمنځ د پوهاوي، شووني روزنې، پوهې فرهنګ... په برخه کې تر ژبې بله داسې بشپړه او هر اړخیزه وسیله یا سیستم نشته. نو ځکه وایوو، ژبه یوازې په انسانانو اړه لري. په دې ډول د ژبې پېژند(تعریف) داسې رارالنډولای شو:
ژبه د انسانانو تر منځ د پوهاوي او خبراوي یوه تړوني(اتفاقي)، ټولنیزه او بیا کسبي پدیده ده، نه فطري او طبیعي.

د کڼو، ګونګیانو او یا د عادي وګړو د اشارو، نښو، خوځښتونو یا Body language او همداراز د مرغانو او ژویو غږونه یا خوځښتونه، له لږ و ډېر

پو هاوي سره سره د يادشويو ژبنيو نښو يا علاموڅو اړخيز شرطونه او ځانګړتياوې نه لري.
لومړنيو انسانانو هم سره د خپلمنځي پوهاوي او خبراوي لپاره له ورته چمونو كار اخيست، خو د ګډ ژوند او بيا ټولنيز كار په بهيركې ورو ورو دېته اړوتل، ديوه نابېره تړون((اتفاق)) له مخې خپل جړ پرغږونه اوازونه سره د بېلا بېلوڅيزونو، پېښو، پديدو... د نومونو او نوميرنې(تشخيص) لپاره وويشي او ځانګړي كاندي، په دې توګه له اوسني علمي تعريف سره سم د((ژبې)) پيلامه را ونښلوي او د پېړيو په پوړيو كې پرله پسې بشپړتيا ور وبښي.
د وسمهالو ژبپوهنيزو څېړنو پلټونو له مخې په ورته ډول د نړۍ په بېلابېلو برخو كې بېلابېلو انسانانو څو بېلابېلې ژبې منځته راوړې او بيا هغو بېلا بېلو ژبو بېلابېلې ژبنۍ كورنۍ رارغولې دي.
د اړوندو كورنيو شمېر تر سلو اټكل شوى، خو نن سبايې متې د شل دپرشو څرك لګېداى شي او د ژبو شمېر كم زيات شپږ زرو ته رسېږي او ښايې ډېرې يې له منځه تللې وي، خو پر وړاندې يې ډېرو هم.له اړوندو ګړدودو څخه ژبو ته لوړتيا او پرمختيا موندلې ده.
د ذهني انځور(مدلول) له پلوه سره د نړۍ ګردې ژبې كوم بنسټيز توپير نه لري او د چا خبره يكې يوه ژبه بلل كېږي، بلكې د جولې يالفظ(دال) او اړوند تړاو (دلالت) له پلوه سره توپيرېږي، دساري په توګه ((ونه)) له بېلابېلو ډولونو سره سره له ذهني يا فكري پلوه هاغه يو((مدلول)) دى، مګر د جولې يا لفظ((دال)) او اړوند((دلالت)) له مخې شپږزرو ته رسي، لكه: ونه، درخت، شجر، ټري، باوم... .
همدا خبره ده چې تر يوه منلي بريده د خپلې ژبې د نږه ساتنې او د پوهې او فرهنګ له پلوه د ودې او بډايېنې لپاره دهرې ليك والا دوديالې او فرهنګيالې ژبنۍ ټولنې هاند و هڅې ، له اره(اصلا) پرهمدغه جوله يا لفظ راڅرخي او همدايې د ژبني اكر وكر (پېژند و هويت) ساتنې مانا لري.

دا د هرې ټولنې، ولس يا ملت يو منلى حق يا رښته گڼل کېږي، چې د ټا کلي ژبپوهنيزې کچې (څلورگونې ويېپانگېvocabulary) په کاراچونې سره خپله ژبه له گډوله کېدنې او بيا يومخيزې پردي کېدنې څخه خوندې وساتي.

په ژبه کي د يوې ټولنې د دود يوه لويه برخه پرته ده . يوه ټولنه له خپل ټولنيز لحاظه پخپله ژبه ژوندۍ ده . ټولنه تر هغه مهاله ژوندۍ بريالۍ او پرمخ تللې وي څومره چې يې ژبه پراخه بريالۍاو پرمخ تللې وي . هر څومره چې ژبه په لوړه کچه وي په هماغه کچه يې ټولنه هم په لوړه کچه وي . داځکه چې يوه ټولنه د وگړو څخه جوړه ده، که چېري يې وگړي په اوچته ژبه گړېږي نو ټولنه هم ورسره اوچته وي . دغه ټول علوم له ځانه ځانگړې ژبې لري، چې د خپلو خاصو ژبو له لارې خپلې

ستونزې حلوي . که څه هم ژبه پخپله يوه پوهنه ده خو بيا هم په ټولو علوموکې گډه ده . متل دی، چې وايي : ژبه د ټولو علومو مورده . ياني پرته له ژبې هېڅ يو کار هم سر ته نه رسېږي . د هر مسلک سره خپله ژبه زده کېږي . د ښه خبروکولو لپاره ځانگړي ښوونکي شته چې لوړو خلکو ته ښې خبرې کول ورزده کړي . د دغو خبرو کولو هنر ته په يوناني ژبه رېټوريک**(Rhetoric)** وايي.

ژبه د يو قام او ملت بنسټيزه ستن گڼل کېږي — ځکه خو ويل کېږي چې ملي ژبه د ملي ټولنې د جوړښت پيلامه گرځي — که يو ملت يا قام وغواړي چې په نړۍ کې دې تل ژوندی پاتې شي او د سيالوملتونو په ليکه کې دې ودرېږي، نو هغه به اورمرو لومړی خپلې ژبې ته د ملي ژبې بڼه ورکوي، ولې چې بې د ژبې له ودې هيڅ يو قام يا ملت نه شي کولای چې په نړيواله ټولنه کې دې د سيالۍ ژوند تېرکړي او ژوندی دې پاتې شي — ځکه چې ټولنيزې اړيکې هم يوازې د ژبې له لارې ديوقام او ملت دخلگو ترمنځ ټينگېدلای شي — ژبه د انسان په تمدن او روزنه کښې

ستر رول لوبوي او د يوې ملي ټولنې بنسټ ږدي ـ ژبه يوازې دتورو او کليمو د ترون نوم نه دی ـ ژبه له اند، احساساتو او جذباتو څخه رازېږي او بيا ديو قام او ملت د وجود او شته والي څرگندونه کوي ـ او بيا دهغې ټولنې د وگړيو په مرسته يوه ملي بڼه غوره کوي او ددوی دپوهنې او پنځونې سويه لوړوي ـ

ژبه هغه غږونه دي چې د هغو په وسيله هر اولس د خپلو موخو تعبير کوي يا هغه اصطلاحي وينااوې دي چې د يو قام پر ژبه جاري وي په عربي يې لسان يا لغت بولي چې له يوناني لوغوس څخه به جوړه شوې وي چې مانا يې ويی (کلمه) ده او په ارو پايې اصطلاح کې يې لانگوېج (language) بولي. ددې غږونو ډولونه د ملتونو په اندازه بېلابېل او ډېر دي نو ځکه په نړۍ کې ډېرې او ډول ډول ژبې پيدا شوې او هر اولس ته خپل غږونه اسان او نور پردي غږونه ورته گران دي.

## لوړې ژبې او ټيټې ژبې

پروفيسر اډيلنگ د نړۍ ژبې د تعبير،سموالي او افادې په لحاظ په لومړي سر کې په دوه ډوله وېشلې دي

## 1 يوڅپه ييزې ژبې

يو څپه ييزې ژبې چې single-syllabic languages هم ورته وايي.ويي يې خورا لنډ او يوڅپه يي وي.نه د کليمې په رېښه کې بدلون راځي او نه ورپورې روستاړي نښلي.

لاندې ليکل شوې ژبې تري ډکې دي. د نوم ،کړ(فعل) او حرف توپير يې نه کېږي له يوه ويې څخه يې د نورو مستقلو ويونو په نښلولو سره فعل او حرف جوړېږي . دا ژبې په هماغه لومړني حالت پاتې شوې دي.

لکه د سويلي افريقا د زنګيانو ، د امريکا د بوميانو ، دشمال او ختيزې اسيا او چين ژبې له دغې ډلې څخه دي.

## 2 لوړې ژبې:

لوړې يا مترقي ژبې هغه ژبې دي چې لمنې يې ډېرې پراخې او ارتې دي او هر راز تعبيرونه چې انسان ورته اړ وي ،لري يې ؛ د ويونو څپې يې هم ډېرې وي،مطلب پکې ښه ادا کېږي، د پرمختللې نړۍ ژبې له دې ډلې څخه دي .

## مترقي يا لوړې ژبې په دوه ډوله وېشل کېږي.

**الف:** اوښتونکې(متصرفه) ژبې :

چې د تصريف ، اړولـــواو اشتقاق وړتيا ولري په ويونو پورې يې دمخه ، په منځ کې او وروسته مختاړي ،منځتاړي او روستاړي نښلي ياني ځينې نښې لري ،چې د ويې نه مخکې، په منځ کې او وروسته راځي چې په انګرېزي کې يې **(prefixes)** Antefix) **(suffixes)** بولي. ياني په ار ويې (اصله کلمه) کې يې ادلون بدلون راځي او يو ويی (کلمه) ډېر شکلونه پيدا کوي.لکه په پښتوکې پوهنه= پوهنځی، پوهنتون، پوهنيار ، پوهنمل او... په دې ډله کې نوري ژبې ، پارسي، انګرېزي،هندي ، جرمني ، فرانسوي ، کوردي،روسي او ...دي.

اوښتونکې ژبې هم دوه مشهورې څانګې لري:

لومړۍ څانګه: اريايي ژبې دي ،چې زموږ د هېواد اريايي نسل خبرې پرې کوي ،هر ځای چې زموږ له خاورو څخه اريايان تللي دي د دوی ژبو ته اريايي ژبې وايوو او اروپايان دې ژبو ته (اندو

اروپايي) (Indo-European) هم وايي .. داندواروپايي ژبومفهوم په لومړي ځل دووتنوورونو جرمن ژبپوهانو ويليام گريم اوجيکب گريم نړۍ ته اعلان کړ ددې ژبو نامتو څانگې شمالي او سويلي څانگې دي : شمالي يې د اروپا اريايي دي لکه : لاتيني[1] (Latin) يوناني (Greeque) ، سلتي (Celtique) ، سلاوي (Slave) ټيوټونيک (Teutonique) ،فرانسوي، اسپانوي، ايټالوي ،جرمني ، انگريزي، روسي او نورې.

سويلي يې د اسيا اريايي ژبې دي لکه سانسکريټ ( د ويدونو ژبه )، زند ( داوستا ژبه ) ،پښتو[2]، پهلوي، زړه فارسي او هندي.

اشتقاقي ژبې: په دې کې د سامي (Semitique) گروپ ژبې راځي چې پخوانيو متمدونو قومونو لکه: بابل ،اشوراو فنيقه قبيلې پرې گړېدلې. ويې يې له يو بل څخه مشتق کېږي اونوي ويې جوړوي چې په دې ډله کې عربي او عبري ژبې دي په دې ژبو تر نورو هغو ډېر شمېر خلک غږېږي او خورا مشهورې دي.

---

[1] لاتيني ژبه چې په لرغونو وختونو کې پرې په اوسني اروپا کې خلک گړېدل ، هغه ښار چې خلک پکې په لاتيني ژبه غږېدل لاتيوم نومېده، ددې ژبې اهميت هغه وخت ډېر شو، کله چې د روم د امپراتورۍ رسمي ژبه شوه، د روم د امپراتورۍ د لمنې په پراخېدو ددې ژبې ويونکي هم ډېر شول . که چېرې د روم امپراطوري نه وه جوړه شوې دا ژبه به يوازې په هماغه ښار کې محدوده وه، ، لاتيني ژبه د کاتوليک کليسا رسمي ژبه د ه، ټول مسيحي شعرونه او ويناوې په دې ژبه باندې دي، اوسنۍ ځينې ژبې لکه پرتگالي، فرانسوي، ايټاليايي، اسپانوي ،رومانيايي او ... له دې ژبې څخه مشتق شوې دي(عايل)

[2] Pashto (Naskh: پښتو - [paʂˈto]; also transliterated Pakhto, Pushto, Pukhto, Pashtu, or Pushtu), also known as Afghani is an Indo-European language spoken primarily by the Pashtun people in Afghanistan and northwestern Pakistan , as well as by the Pashtun diaspora across the globe.

## سامي ژبي په لاندي ډولونو ويشل کيږي

ارامي: د بابل زړه ژبه ده چې سرياني او کلداني يې څانگې دي . عبراني: چې تورات اسماني کتاب په دې ژبه دی . **عربي** په سامي ژبو کې خورا ښه او مشهوره ژبه ده ،چې عربي ملتونه پرې گړېږي او د اسلام او سپېڅلي قران مبارک ژبه ده. همدارنگه حبشي ژبه هم په دې کټگورۍ کې شامله ده.

**ب:** نا اوښتونکې (غيرمتصرفه) ژبې:

دا ژبې کلک او جامد ارونه( اصول) لري ، او په اصل ويي کې يې کورټ تغيير نه راځي. اشتقاق يې د بې مانا اداتو په نښلولو صورت مومي.په دې ډول ژبو کې توركي ، تاتاري، او مغولي ژبې داخلې دي.

# هندو اروپايي ژبي يا اريايي ژبي

ومولوستل چې هندو اروپايي يا اريايي ژبې په مترقي اواوښتونکو ژبوکې نامتو ډله ده ،چې د نړۍ يو مشهور پښت يانې اريايي قومونه ورته وايي ، دا ژبې په سموالي او ارتوالي کې خوراښې ژبې دي او د بشر پرمختللي قومونه هم په دغوژبو غږېږي ،څنگه چې زموږ ژبه پښتو هم له دغو ژبو څخه شمېرل کېږي نو مناسبه ده چې په ار يايې ژبو دلته لږ څه وغږېږو.

اريايې ژبې د غږونو او ارونو(اصولو) له مخې دوه ډلې دي چې اروپايې او اسيايې ژبو باندې وېشل کېږي ،اروپايې ژبې درې لوی ښاخونه لري ،په لومړي ښاخ کې فرانسوي،اسپانوي او ايټالوي ژبې راځي او لاتيني ښاخ ورته وايي.

په دويم ښاخ کې جرمني ،انگرېزي، ناروېژي،او نورې ژبې رانغوځي ،چې جرمانيک ښاخ يې بولي.(

داسې هم ويل کېږي چې ددې څانګې پخواني نوم هندوجرمانيک و، خو د دويمې نړيوالې جګړې په وروستيوکې دسياسي استفادې د مخنيوي په خاطر د هندو اروپايي په نامه يادې شوې

په درېيم ښاخ کې روسي،پولنډي،چکي او سربي ژبې،شاملېږي چې سلاوي ښاخ بلل کېږي

د اسيا اريايي ژبې همدغه ډول درې لوی ښاخونه لري.

لومړی ښاخ دهندي ژبو دی،چې (هنديک) ژبې ورته ويلای شو، په دې ښاخ کې سانسکرېټ ،پراکرېټ، هندي، اردو.پنجابي،ګجراتي،او دشمالي او لوېديځ هند نورې ژبې شاملېږي.

دويم ښاخ د ايراني ژبو دی چې (پارتيک) په نا مه يادېږي په دې ښاخ کې زړه پارسي، ساساني،پهلوي، اوسنۍ پارسي. د ايران سويلي ګړدودونه يې يو ګروپ. مادي،اشکاني، پهلوي،ګيلکي،کردي او د ايران شمالي ګړدودونه يې بل ګروپ دی.

درېيم ښاخ چې د تاريخ او موقعيت له امله ډېر اهميت لري د باختري ژبو دی چې موږ يې د (پښتيک) په نامه يادوو په دې ښاخ کې پښتو،بلوچي،اورمړي،پراچي،او د هندوکش،د شاوخوا نورې ژبې شاملېږي،مګر پښتو پکې د لويې مور ځای لري، چې همدا باختري ژبې هم په دوو څانګو وېش شوې دي چې شمالي او سوېلي باختري باندې وېشل شوې دي . په سويلي باختري کې،پښتو،اورمړي،پراچي او پاميري او په شمالي باختري کې سوغدي،يګنوبي،خوارزمي،الياتي او سيتي ژبې شاملې دي. چې هره ډله په خپل منځ کې د ځانګړنو ، ويونو، مخرجونو،وينګ (تلفظ) او کليموله مخې سره ورته ده ، او له يوې کورنۍ څخه ګڼل کېږي .

ددې پـه پـار چې اريـايـې ژبـې هر ډلـه ښه وپـېژنـدل شي نـو پـوهـانـو تـولـې اريـايـې ژبـې پـه دوو ډلـو وېشلې دي چې . لـومړی ډلـه سيـتم (Satme) بـولـي او دويـمـه ډلـه سيـنـتم (Centum) بـولـي.

سيـتم پـه سانـسکريـټ ژبـه کـې سلـو تـه وايـې او سيـنـتم پـه لاتـيـنـي ژبـه کـې سلـو تـه وايـې

پـوهـانـو يـوازې يـو ويـی (سل، ۱۰۰) معيـــار کــړې دی نـو هغه تـولـې اريـايـې ژبـې چې د سل پـه ويـــې (کـلـمـــه) کـې يـې (ن) مـوجـود وي د (سيـنـتم) لـه ډلـې څخه او کـــه (ن) پـکې مـوجـود نـه وي د (سيـتم) لـه ډلـــې څخـــه گـڼــل کـېږي. د بـېلـگې پـه ډول

| د سيـتم ډلـه | | دسيـنـتم ډلـه |
|---|---|---|
| سانـسکريـټ | = | ستم |
| يـونـانـي | = | هـيـکـاتـون |

هـنـدي = سو فـرانـسوي = سانـت

روسي= ستـو

انـگريـزي = هـنډريـډ

اوستـا=ساتـا جرمـنـي = هـونـدريـت

پـښتـو= ســــــل

لاتـيـنـي = کـيـــــــنـتـوم

پـاړسو= سد

دغه ډول ژبپوهانو ارمني، الباني، او ليتواني ژبې هم په ((سيتم)) کې داخلې بللې دي. ليکن نورې لوېديزې اريايې ژبې لکه هالېنډي،ناروېژي،سوېډني ،ډنمارکي اونورې په ټوليزډول د سينتم په ډله کې شمېرل کېږي.

د اسيا اريايي ژبې چې ختيزې اريايې هم ورته وايې ،له ارې له اريايې ژبې څخه راوتلې دي د ژبپوهانو له خوا په دوو څانګو وېشل شوې دي چې معمولا يې يوې څانګې ته (هندي) او بلې ته يې ايراني وايې ، دا هره څانګه يوه څانګه لومړۍ په خپل ار مرکز باختر يا سغديا کې منځ ته راغلې او بيا لوېديځ او ختيځ خواووته له خپلو ويونکو سره تللې ده.

زند، زړه پار سي،پهلوي،اوسنۍ پارسي اوځېنې نور يې په( ايراني ) ګروپ کې شاملې دي.

سانسکرېټ،هندي،پنجابي ،اردو،او دهندوستان ځينې نورې ژبې په (هندي)ډله کې شاملې دي.

خو ختيزې اريايي ژبې يوه بله څانګه هم لري چې دا څانګه هم په خپل اصلي مرکز باختر کې زېږېدلې او د لوېديزې او ختيزې يانې ايراني او هندي څانګو ترمنځ پاتې شوې ده. دې څانګې ته باختري او مرکزي ژبې ويل کېږي او په موجوده اصطلاح ورته افغاني ژبې هم ويلای شو.په دې څانګه کې تر ټولو مشهوره او لويه ژبه پښتو ده،چې د مرکزيت او اصليت حيثيت لري.پرته له دې څخه اورمړي،پراچې،سکزي،تېرايې،اوپشه يې هم د مرکزي ژبو په څانګه کې شاملوي ،چې دا ټولې ژبې له پښتوسره نږدې ارتباط لري او له يوې سلسلې څخه ګڼل کېږي.

ژبپوهان تل د وېشنې او ډلې،ډلې کولو په وخت د ټولو ژبو بنسټونو ته ګوري ، د قواعدو مشابهت او د ويونو د رېښو سره نږدېوالی يې په غور ويني،که په دغو اساسونوکې ژبې سره نږدې او سره ورته وي، نودوی هغه ژبې په يوه ډله کې شمېرې او وايې چې له يوې کورنۍ څخه دي.

هغه ژبې چې مخکې مو يادونه وکړه او ټولې له يوې کورنۍ څخه دي نودغه ژبې چې د هندو اريايي ژبې کورنۍ دي ټولې په بنسټونو،قواعدو او ويونو کې ډېرې سر ه نږدې دي ، که دغه لاندې لښتليک په غور وګورئ ،دا به درته ښکاره شي ،چې رښتيا هم دا ژبې له يوې کورنۍ څخه دي.

| پښتو | پاړسو | سانسکريټ | اوستا | لاتيني | انګريزي | جرمني | فرانسوي |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| پلار | پدر | پاتري | پيتر | پتر | فادر | فاتر | پير |
| مور | مادر | ماتري | ماتر | ماته را | مدر | موتر | مير |
| خور | خواهر | سواچر (سوسر) | هوګهر | سوردر | سيسټر | شوستر | سور |
| ورور | برادر | بهراتر | براتر | براتر | برادر | برودر | فرير |

## دپښتو اصل او ريښه

پښتو[3] ژبه چې په افغانستان،پاکستان، هند،کشمير،يولړ شمېر د چېن په سينکيان ايالت ، دقفقاز د غرو په لمنو کې، د شمالي ايرلنډ په ډوبلين کې،دامريکا په تېرافرما کې،په آسټرآليآ او له پنځو زرو زيات د ايران په خاوره کې ژوند کوي چې په خټه الېزي او نورزي پښتانه دي د نړۍ دهغو پنځوسو معتبرو ژبو په ليکه کې ولاړه ده ،چې بډاى ادبيات لري او دبشرد زياتو وګړو دليک او لوست ژبې دي ، دافغانستان لومړنۍ رسمي ژبه هم ده او نږدې ٥٤ ميليونه وګړي پرې خبرې کوي .

پښتو که له يوې خوا د پښتون قام د ژبې نوم دى نو له بلې خوا په عامه اصطلاحي مانا د ښوخويونو او درنو چارو نوم هم دى په دې خويونو کې پت، عزت،ښېګڼه،توره،مېړانه،وفا او داسې نور شاملېږي چې همدغه د پښتو د کليمې لغوي او بنسټيزې ماناګانې دي.څومره چې پښتانه زاړه دي ،دومره پښتو زړه ده ځکه چې پښتو يوازې د يوې لرغونې ژبې نوم نه دى بلکې دا د هغو ښو ثقافتي اقدارو د ټولګې نوم دى چې دا قوم پکې پېژندل کېږي ،که ووايو چې د پښتو له امله پـ ښتون پښتون دى بې ځايه به نه وي ، اوس چې څومره پښتون زوړ دى هغومره پښتو زړه ده په دې لړ کې دا خو ټکي د غور وړ دي چې دا ترې ذباتېږي چې پښتو زرګونه کاله زړه ژبه ده.

---

[3] Pashto is spoken in neighboring Pakistan by about 17% of the total population (approx. 28.9 million people), mainly in the Khyber Pakhtunkhwa, Federally Administered Tribal Areas (FATA) and in northwestern Balochistan, as well as in parts of Mianwali and Attock districts of the Punjab province. Modern Pashto-speaking communities are also found in the cities of Karachi and Hyderabad in Sindh. With close to 7 million ethnic Pashtuns by some estimates, Karachi has the largest Pashtun population in the world.

Other communities of Pashto speakers are found in northeastern Iran, primarily in South Khorasan Province to the east of Qaen, near the Afghan border,and in Tajikistan. There are also Pashtun communities in the southwestern part of Jammu and Kashmir as well as in Uttar Pradesh, India

Sizable Pashto-speaking communities also exist in the Middle East, especially in the United Arab Emirates[17] and Saudi Arabia, as well as in the United States, United Kingdom[18], Thailand, Canada, Australia China & Nederland.

۱ د پېښور پښتو اکاډيمي په (پښتو) رساله کې قاضي عبدالحليم (اثر) د (ار) ټکي په اړه مضمون کې دا ثابته کړې ده ،چې پښتو اووه زره کاله زړه ژبه ده.

۲ په ريګويدا کې د پښتون ذکر راغلی (چې وروسته به په سپړلي ډول وڅېړل شي )دا کتاب په (۱٤۰۰) مخ زېږدي کې ليکل شوی ،کېدای شي په دې لحاظ ددغه قوم ژبه نږدې ۳٤۱۰ کاله زړه وي.

۳ په اوستا کې د بخد په حواله د پښتون ذکر راغلی دا کتاب په ۱۰۰۰ مخ زېږدي کې ليکل شوی دی کېدای شي ددي قوم ژبه په دې لحاظ ۳۰۱۱ کاله زړه وي.

۴ هېرودټس يوناني پېښليکاند په (٤۸٤_٤۲۵) مخ زېږدي کې د پښتنو وطن پکتيکا ياد کړی دی په دې لحاظ به د پښتونخوا ددې قوم ژبه ۲٤۲۲ کاله زړه وي.

۵ اميرالبحر سکاىی لاکس خپل يونليک کې (۵۲۱-٤۸٦) مخ زېږدي کې ددې سيمې نوم پکتيکا ذکر کړی دی ، بطليموس يوناني هم د پښتنووطن پکتين راوړی دی په دې لحاظ به د پکتيا د خلکو ژبه پښتو نږدې ۲۵۲۲ کاله زړه وي.

۶ لوی استاد او ستر څېړونکی خدای بښلی عبدالحی (حبيبي) په خپله يوه مقاله (پخوانۍ پښتو دوه نيم زره کاله مخکې) کې په دې اړه ليکي چې د ايران داريوش نومي پاچا (۵۲۲څخه تر٤۸٦) مخ زېږدي پورې حکومت کړی دی ،دهٔ د خپل سلطنت د کارونو ،دصداقت دامن د عدالت د څښتن د ستاينې او د درواغو او ناپاکۍ څخه د بېزارۍ بيان د غره په تيږو ليکلی دی و،چې د بېستون ډبرليک يې بولي ، دا بيان ټول ۲٤۰ کرښې دی په هره کرښه کې يې (٤۵) حرفونه دي او هر حرف د ۳څخه تر ۵ پورې مېخي علامو

نه جوړ دی ، په دې حساب ټولې علامې ۷۵۰۰ دي، ددغه بېستون د تيرو په څلورمه ستن کې په ديارلسمه کړۍ کې درې د پښتوژبې مصرعې دي دا مصرعې په مېخي رسم الخط کې ليکلی شوی دی چې په پښتو رسم الخط کې داسې دی .

نې ارې کــه اهم
Ne a ri ka a hum نـــې اړيـــکه وم

نې دروجه نه اهم Ne drau ja na a hum
نـــې دروه جـــنه وم

نې زوره کـــه اهم Ne zura ka a hum
نې ځـــــورکـــړه وم

له دې څېړنې نه معلومه شوه چې پښتو د مېخي خط په شکل کې دوه نيم زره کاله وړاندې موجود وه.

۷ د محمدهوتک له پټې خزانې نه دا ثابته شوه چې پښتو په دويمه پېړۍ کې وليکلی شوه، د امير کروړ بابا ليکلی وياړنه چې پټې خزانې څخه راپاتې ده، او لومړنی پښتو معلوم شعردی ددې خبرې ښکاره ثبوت دی .

د پورتنيو ټکو په رڼاکې موږ دا ويلای شو چې په ژبني لحاظ پښتو د سانسکرېټ او اوستا په ډول زړه ده او په دې لحاظ هم ددې لرغونتوب درې نيم زره کاله شاوخوا ته رسېږي.

د مېخي ليک په شکل پښتو نږدې دوه نيم زره کاله زړه ده او په موجوده ليک دپښتو لرغونتوب ۱۳۷۲ کالونو ته رسېږي ، خو د اټکل په ډول موږ د پښتو لرغونتوب ۵۰۰۰ کاله يادولی شو ،کېدای شي د وخت په تېرېدو او د نويو څېړنو په رڼا کې دا اټکل کالونه نور هم وړاندې لاړ شي ،ځکه چې په نوي

ساينسي پېر کې لکه هر ميدان د څېړنې کار ښه په تېزۍ سره کېداى شي.

کله چې سړى هغه روايات او نظريات راسپړي چې دپښتو داصل او ريښې په باره کې په مختلفو اثارو کې راغلي دي، نو له راورټى سره دا خبره هرو مرو منى چې (دپښتنو دژبې داصل او ريښې په باره کې هم دنظر اختلاف تر هغه نه کم نه دى، لکه خپله دپښتنو داصل او نسب په باره کې

پښتو چا د دپوانو ژبه بللې ده، چا سامى ژبو ته ورکش کړې ده او پښتانه يې بني اسرايل بللي دي ، دا نظريه د گورگانيانو له درباره نشت کوي،ددغې نظريې لومړى څرک په (مخزن افغاني) کې چې د جهانگير د دربار واقعه ليکونکي ،نعمت الله هروي غالبا په (۱۰۲۰هـ ل) او (۱٦۱۲)زېږدي کال کې ليکلى دى،ليدل کېږي.همدغه نظريه بيا دافضل خان خټک په تاريخ مرصع ، دحافظ رحمت خان په (خلاصة الانساب) ،خورشيد جهان،مرحوم قاضي عطاالله (دپښتو ادب تاريخ) کې ليکلي وو،خو دافغان پېښليکاند(مورخ) ښاغلي احمد علي کهزاد (تاريخ افغانستان) چې په پارسي ژبه خپورشو،او په هغه کې په ژبڅېړنيزو تاريخي دلايلوزبات شوې وه، چې پښتانه اريايان دى ، بيا نو قاضي عطاالله په خپل دويم چاپ کې له شکريې او مننې سره د کهزاد د کتاب نظريه سمه وبلله .همدارنگه د پښتو د سامي توب نظريه سرويليم جونز،راورټي او نورو مورخينو هم تعقيب کړې ده، د سامي نظريې ځينې پلويان په

يو لړ نومونو او الفاظو هم تکيه کوله ،چې هغه له عبري ژبه او پښتوکې يو

ډول دي . د دوی ځينې دا دادليل راوړي چې خو ژبپوهان وايې چې يوې ژبې ته د بلې ژبې د يو دوه يا د سوونو ويونو په ننوتو ، د دويمې ژبې ويونکي د لومړۍ ژبې د ويونکو له نسل څخه نه ګڼل کېږي همدا اوس زمونږ او تاسې په سلو کې اته نوي نومونه په عربي ژبه دي او دې سره نو مونږ ځانونه عربان نه بولو او نه نور خلک مونږ عربان بولي .چا دهندو ايراني ژبو دسترې ونې په هندي څانګه پورې مربوطه ګڼلې ده او چا يې په ايرانی څانګه پورې تړلې ده . چا بيا پښتو اصلاً دساکانو ياسيتيانو ژبه بللې ده او چا دهندو ايراني ژبو تر منځ يوه مستقله ژبه او د اتصال کړۍ ګڼلې ده.

د تذکرة الملوک مؤلف وايي چې ځينې روايتونه پښتو د ديوانو ژبه بولي. دی ليکي:

(ځينې روايتونه وايې چې افغانانو خپله ژبه له ديوانو زده کړه ، ځينې نور بيا وايې دا دکسي د غره داوسېدونکو ژبه ده ، دافغانانو دا عادت ؤ چې ددغو خلکو ښځې او لونې به يې تري بوولې او ودونه به يې ورسره کول او ځکه يې نو پښتو ژبه ورنه زده کړه او خپله ژبه يې چې ابراهيمي (عبري) وه، هېره کړه.

راورټي ( H.G.Raverty) چې د پښتو ژبې لوی پوهاند او پلټونکی دی، او ډېر کتابونه يې په کې ليکلي او خپاره کړي دي، د خپل پښتوگرامر د (کلکتې طبع١٨٥٦ز) په مقدمه کې مفصلا د پښتنو پر اره او سته بحث کوي او د اريايي او سامي ژبوسره يې د گرامر او الفاظو له پلوه پرتله کوي ،وروسته دې پايلې ته رسېږي ،چې د پښتو ،زند، او پهلوي ژبو ترمنځ ډېرمشابهت شته د(پښتوپه پخوانوکتابو کې ؛لکه زند،حروف د حرکاتو پر ځای کښل شوي دي ،نو ځکه وايم چې سانسکريټ او زند سره ډېر نږدېوالی او له پهلوي سره هم ټينگه اړه لري...))

خو څرنگه چې دراورټي مطالعه په زړو فارسی او پښتو اثارو کې ډېره پراخه وه او پدغو اثارو کې، چې راورټی په ډېر زيات اهميت ورته قايل و، پښتانه په مکرر او متواتر ډول بني اسرائيل بلل شوي وو او خپله پښتنو هم دا روايت تائيداوه، نو له دې امله دی ترپايه له سامي ژبو په تېره بيا عبري سره دپښتو داصل اوريښې په نږدې ارتباط کلک ودريد او ورنه تېرنه شو.سرويليم جونز، دبنگال د شاهنشاهي اسيايی ټولنې دمؤسسې رييس، له راورټی نه پخوا پښتو له سامي ژبو سره ورته بللې وه. جونز دبنگال داسيايي ټولنې په مجله کې په هغې يوې لنډکۍ اوبې درنگه تبصره کې چې د يوې تاريخي ليکنې په ارتباط يې وکړه، وويل چې (پښتو کلدانی ژبې ته ډېره زياته ورته ده)

مگر دپښتنو دتاريخ او ژبې يو شمېر څيړونکو او دژبنيو مطالعاتو مقتدرو پوهانو له کلداني او نورو سامی ژبو سره دپښتو ارتباط په قاطعيت رد کړ او وې ويل چې پښتو له اصله يوه اريايي ژبه ده.

کلاپروت (Kleporthe) جرمنی ليکوال لومړنی وتلی مستشرق ؤ چې په کال. ۱۸۱۰ کې يې داسيايي ادبياتو دارشيف په اول ټوک کې دا نظريه په صراحت رد کړه چې گوندې پښتو له سامی ژبو سره تړلې ده . ده وليکل چې ( دپښتو او سامی ژبو ترمنځ نه په کلماتو کې اندکترين شباهت شته اونه په گرامري جوړښت کې.او پښتو ژبه بالکل د (اندوجرمانيک) ژبو څخه ده )

مستړ الفنسټن مشهورمورخ وايي : دپښتو ژبې ځينې الفاظ او کلمات چې د ژبې اصلي اجزا گڼل کېږي له زند او پهلوي ژبو سره نږديوالی لري.دپښتو په ۲۱۸ ويونو کې چې ما پلټنه وکړه نو يوې کليمې هم له سامي ژبو سره څه مشابهت نه درلود ، له دې کبله سړی ويلای شي،چې پښتو د هندوجرمن له ژبوڅخه ده.

يو بل انگريز مولف، جان ملکم، هم دفارس په تاريخ کې الفنسټن ته ورته نظر څرگند کړ او وېې ليکل چې(د عبري او پښتو يا دافغانانو د معاصرې ژبې تر منځ دنږدېوالي هيڅ څرک نه لگيږي).

په يو بل اثر کې هم چې دهرې مځکې انجيل نوميږي او په کال ۱۸۴۸ کې بېگسټر خپور کړی دی، دپښتو

دساميت نظريه په قاطع ډول رد شوې او ليکل شوي دي چې پښتو (دسامی ژبو هيڅ خصوصيات نه لري.)

البته يو زيات شمېر غربي مؤلفينو او دژبنيو مطالعاتو پوهانو نه يوازې دا چې له ډېر پخوانه دپښتو دساميت نظريه ردکړې،بلکه دايې هم په ډاکه کړې ده چې پښتو يوه هندو اروپا يی ژبه ده.

بيا هم کلاپروت لومړنی غربي محقق دی چې پښتو يې يوه اريايي ژبه وبلله او دا عقيده يې په ډېره کلکه په ډاکه کړه چې(پښتو بې شکه دهندو، جرمانيک ژبو دسترې ډلې يوه څانگه ده.)

دژبنيو مطالعاتو ډېر لوی عالم پاټ هم پښتو په قاطع ډول اريايې ژبه وبلله . لوونټال په دې اړه داسې ليکی:

پاټ چې بل دده په سويه ستر دفق اللغه عالم نه دی تېر شوی، يوه شيبه هم پدې صرفه نه کوي چې پښتو دهندو اروپايي ژبو په کتار کې ودروي.)

ډورن هم دپښتو منتخباتو په مقدمه کې پښتو يوه سوچه اريايی ژبه وبلله او ويې ليکل چې (پښتو دهندو فارسی ژبو په لويه کورنۍ پورې مربوطه ده.)

اما هر څومره چې دژبې تاريخي مقايسوي څېړنې زياتره دعلم حيثيت غوره کاوه، دژبو په باره کې مطالعه هم هغومره دقيقه کېدله. دپښتو په برخه کې هم پوهانو يوازې پدې قناعت ونه کړ چې دهندو-

ايرانی ژبو په کورنۍ پورې مربوطه اريايی ژبه يې وبولی، بلکه غوښتل يې دا هم معلومه کړي چې ددغې لويې کورنۍ له کومې څانګې سره خاص ارتباط لري.

څرنګه چې په پښتو کې دهندو ايرانی ژبې دلويې کورنۍ ددواړو ډلو خصوصيات دورايه او په وفرت موجود دي، نو په اول کې چا پښتو په هندی ډله پورې وتړله او چا په ايرانی ډله پورې.

کوم غربي ليکوال چې پښتو يې لومړی ځل دهندو ايرانی ژبو له هندی ډلي سره مربوطه وګڼله هغه رابرت ليچ دی.ليچ په کال ۱۸۳۹ کې دبنګال داسيايی ټولنی په مجله کې دپښتو ګرامر په باره کې يو مضمون، چې په حقيقت کې په لويديځ کې دپښتو ګرامر لومړنۍ برخه ده. خپور کړ او دهغه په مقدمه کې يې دپښتو او سانسکريټ داصواتو شيې چې پښتو په قاطع ډول دسانسکرېت بڼه لری.

☚اما چا چې پښتو دهندی ژبو ديوې شايسته وسيعې تاريخی-مقايسوی مطالعې په نتيجه کې دهندو ايرانی ژبو له هندې څانګې سره مربوط وګڼله هغه رودولف هورنل دی. هورنل په خپل هغه اثر کې چې دګادي ژبو مقايسوی ګرامر نوميږي، ليکی چې د هندشمال غربی سرحد ترنهايی حدودو پورې پراکرت ژبې ويل کېږي. (خوله دې ځای نه ها خوا پښتو او کافري ژبې پرتې دي.) دی خبرې ته دوام ورکوي اوليکي: (ترومپ په خپلو هغو مقالو کې چې دپښتو او کافري ژبو په باره کې يې ليکلې دي، له ګادي سره ددغو دوو ژبو نژدې والی ته توجه ور اړولې ده.........مګر خبره

له دې نه وړاندې ځی او (دغه ژبې) خصوصا پښتو دمګادي پراکرت ژبې مسلم خصوصيات لری.)

هورنل پدې پسې له ځينو ګادي ژبو سره دپښتو او نورستانی ژبو يو شمېر ګډ خصوصات او مميزات په ګوته کوي او په پای کې ليکي چې (له دې نه څرګنديږي چې مګادي پراکرت او پښتو او کافري ژبې په لرغونې زمانه کې بېځی سره نژدې وې او حتی يوه ژبه يې جوړوله.وروسته سور اسينی ژبې دمګادي او دغو ژبو تر منځ واقع شوې او مګادي ژبه يې ورو ورو د شرق په لور بيخي لرې ټېل وهله .)

په پښتو کې دهندی اريايی ژبو خصوصيات دومره بارز وو چې حتی فرانسوي لوی ختيځ پوه جېمز ډار مستتر هم په اول سرکې په خپل هغه اثر کې چې هند ته دفلالوجيکو مطالعاتو دسفررپوټ نومېږي او په کال ١٨٨٧م کې خپور شوی دی، دهندو ايرانی ژبو په هندي ډله پورې مربوط وګڼله.

اما چاچې پښتو اول وار دهندو ايرانی ژبو دونې له ايرانی څانګی سره دوتړله هغه شيلې ډيور دی.ده په خپل هغه اثر کې چې (دمقايسوی فلالوژی اجمال) نومېږی او په کال ١٨٥٣ کې خپور شوی دی، پښتو، اساسا، دايرانی ژبو په کتار کې ودرو له خو په عين وخت کې يې وويل چې پښتو څانته خاص موقعيت لری.دی دايرانی ژبو په بحث کې ليکي چې

دافغانستان ژبه يعني پښتو هم په همدې ځانګه پورې ارتباط لري خو (ځانته يې په يوه خاصه او ابتکاري طريقه انګشاف ورکړى دى.)

دژبنيو مطالعاتو لوى عالم ماکس ميولر هم پښتو له ايرانى ژبو سره مربوطه وګڼله. ده په خپل هغه اثر کې چې عنوان يې ( په شرق کې د جګړې دمرکز ژبې) دي اوپه کال ۱۸۵۵م کې خپور شو،وليکل: (افغانى ياد پښتنو ژبه........د خپل ګرامر په لحاظ دفارس دژبو له ډلې سره تړلې ده.

ميولرورووسته په خپل يوه بل اثر (دافغانانو زبه) کې چې په کال ۱۸۶۲م کې خپور شو، خپله خبره نوره هم تصريح کړه او پښتو يې دايرانى ژبو په شرقى ډله پورې مربوطه وګڼله اوپدې ترتيب يې له (زند) سره ونښلوله.

خو په لنډ ډول سپينه خبره داده چې د سيتم او سينتم له لرى څخه په ښه شان څرګندېږي چې پښتو يوه اريايې ژبه ده او په اريايې ژبوکې د (سيتم) له ډلې څخه ده، يعنې يوه ختيزه اريايې ژبه ګڼل کېږي .

د يوې ژبې د لرى او کورنى د معلومولو لپاره دا وروسته درې مهم اساسونه دنظر لاندې نيول کېږي:

1. د اصواتواو غږونو پرتلنه
2. دکلماتواو الفاظو مقايسه او پرتلنه
3. د قواعدو او ګرامري ارونو مقايسه او څېړنه

کومې ژبې چې په دغو دريو اساسونو کې يو له بله نږدې او سره ورته وي او د اصواتو ،لغاتونو او قواعدوشباهت يې ښکاره او څرگند وي.نوهغه ژبې له يوې کورنۍ او يوې دستې څخه شمېرل کېږي.

څومره چې معلومه شوې ده پښتو ژبه په دغه درې واړو شيانو کې له ختيځې اريايي ژبو سره شباهت او نږديوالی لري او په تېره د اوستا او سانسکريټ سره چې دوې مشهورې زړې اريايي ژبې دي ،ډېره نږدې او قريبه ده.

د پښتو دارياييتوب يو مهم دليل دادی چې دا ژبه له اريايي ژبو سره صوتي ،لغوي او گرامري مشابهت لري او ډېر زاړه اريايي لغات پکې موجود دي ،چې په راتلونکو پاڼو کې به لاښه څرگنده شي.

بل دليل يې دادی چې د اروپازياتره ژبپوهانو اوختيځ پوهانو چې په پښتو کې يې مطالعات کړي دي، له علمي لارې څخه دا خبره زباد کړې ده چې پښتو يوه اريايي ژبه ده او په هېڅ صورت له سامي ژبو سره اړيکې نه لري( چې وروسته به په سپړلي ډول د پښتو په باره کې د ختيځ پوهانو له نظريو څخه معلومه شي.پښتو په اصل کې د (پښت=پکهت) څخه جوړ شوی په دې ډول دپښتو ژبې اساسي قاعده داده،چې د هر اولس او قوم د نامه په پای کې يو مجهول (واو) وراچوي،او د هغه قوم ژبه په دغه نامه بولي ،د بېلگې په ډول په پښتو کې هندکي يا اندکي هندوستاني ته وايي ،چې دا نوم ديونان مورخينو انديکه (Indika) ضبط کړی دی که ددغې قاعدي سره سم يو مجهول (واو)وروراچوو ،ځکه چې اخر حرف علت (ی) هر وخت لوېږي ؛ نو به هندکو يا اندکو (Indiko) ځينې جوړه شي، چې پښتانه يې د هنديانو ژبې ته وايي او چې ويې سره سپک او او تخفيف شي ؛نو (انکو) يې هم بولي لکه يو شاعر وايي

زه خوار پښتون يم انکو مې څه زده

راته وېږي((مارا تمهارا))

دا قانون عام دی پښتانه خپل گاونډي قومونه ديگان (Digan)بولي او ژبه يې په هغه قاعده ديگانو

بولي دغسې د پارس ژبې ته پارسو (Parso) وايې : نوکه د ريگويدا د پکهت= پښت په پاى کې پر دغه قاعده برابر يو مجهول ( و) زيات شي پکهتو=پښتو به ځينې جوړه شي ،چې مانا يې د پښتنو ژبه ده.ځکه چې د (پکهت=پښت) نوم زوړ دى ؛ نو د پښتو نوم هغومره پخوانى دى .
(پښت) او(پښتون) دواړه يو شى دي، او له کوم وخت نه چې ددې قام وجود ثابت دى او له هغه وخت نه ورسره ددې ژبې وجود هم اړين گڼل کېږي.
له دې پورته ټولو څېړنوڅخه دا پايله په لاس راځي چې پښتو يقينا د يو اريايې قوم ژبه او د اريايې ژبو په ډله کې شامله بلل کېږي.
بناپر دې څوک چې پښتو د سامي ژبو په ډله کې شمېري بالکل تېر وځي،ځکه،چې ددې خبرې لپاره کوم علمي دليل وجود نه لري.

# د پښتنو داريايي توب يوڅولنډ دليلونه

لکه څنگه چې پښتانه يو اريايې قوم دى.لکه چې د((پښت)) او د پښتنو د نورو قبيلو بيان په پخوانيو اريايې او نورو اثارو کې راغلى دى . پښتانه د اريه ؤ هغه برخه ده چې داريانا په علاقوکې خپاره شوي او تقريبا مرکزي ارين بلل کېږي .د پښتنو يوه لويه برخه چې د هندوکش سوېلي خواو ته راغلې وه ، تر څه مودې د ((پښت))په نامه مشهور او مملکت يې د ((پښتيا)) په نامه مشهور ؤ ، مگر بيا وروسته د ټولو پښتنو دپاره د ((پښتون)) نوم عام او مملکت يې ((پښتونخوا)) وباله شو.
په دې ځاى کې يوعجيبه خبره داده چې پښتانه د اسلامي عصر او په تېره دمغولو د دورې په ځينو تاريخونو کې بني اسرايل بلل شوي دي . ددې خبرې په ترديد کې زياتې څېړنې ته اړتيا نشته ،ولې چې داخبره اصلا کوم پوخ تاريخي سند او اساس نه لري

يوازې دمغولو دسياسي غرضونو په وجه دا خبره ميدان ته راوتلې او له ځانه جوړه شوې ده.
دپښتنو له لاسه دمغولو سر تندی په کرار نه ؤ.
پښتنودمغولو پاچاهي نه منله او دوی يې يو پردی قام گاڼه ، نو مغولو دا هڅه پيل کړه چې پښتانه هم دځان په شان يو بېگانه قام ثابت کړي او بني اسرائيل يې وبولي . که څه هم اوس دپښتنو اريايې توب ټولو پوهانو منلی اوهرچاته ثابت شوي دي ، خو بياهم په دې باب کې يو څولنډ دليلونه وروسته بيانيږي :

۱دټولو نه لومړی دليل دادی چې د پښتنو قيافه ،شکل ، او شباهت ،بدني ، رغاوڼه دپخوانيو اريه ؤ په شان ده.
دپخوانيو اريه ؤ لويې سينې ،پلنې اوږې ، لوړ قدونه ، غټې رنې سترگې ،ښايسته څېرې ، اوږده قوي مټونه ، متناسب اندامونه او مزبوت وجودونه کټ مټ په پښتنو کې موجود او ليدل کېږي .



۲: بله خبره داده چې بني اسرائيل ديعقوب (ع) اولاده ده ، اسرائيل دده لقب ؤ ، نو زيږنده يې بني اسرائيل بولي .
حال دادی چې د ((پښت))قوم بيان ديعقوب عليه السلام له زمانې څخه ډير پخوا په ريگويدا کې راغلی دی.
۳ د(ريگويدا)دليکلو زمانه (۱۹۰۰کاله مخکې له ميلاد څخه) اويا (۱٤۰۰کاله مخکې له ميلادڅخه) ده

چې په دې وخت کې يعقوب عليه السلام لا پيدا شوى هم نه ؤ.

دبني اسرائيل عمومي او لوى مهاجرت له مصر او فلسطين څخه دپښتونخوا ځمکو ته دتاريخ له مخې نه دى ثابت شوى .که چېرې يوه نيمه کورنۍ راغلې وي ،نو هغه هېڅ اهميت نه لري او نه دا دومره پښتانه ديوڅو کورنيو اولاده ګڼل کېداى شي.

۴ دټولو نه لوى دليل ژبه ده د پښتو ژبه په هېڅ صورت کې له سامي ژبو سره تل نژدېوالى نه لري . دفلالوژي پوهانو داخبره ښه څېړلې اوثابته کړې ده چې پښتو يوه زړه اريايي ژبه ده او د اوستا او سانسکرېټ سره اساسي ګډون او اشتراک لري . هر کله چې پښتو يوه اريايي ژبه ده نو ويونکي يې هم خامخا يواريايي قوم ګڼل کېږي . که چېرې پښتانه بني اسرائيل واى نو بايد چې د موجوده يهودو په شان دوى هم خپله ژبه ساتلې واى.

که څوک ووايي چې ژبه به يې بدله شوې وي نودا هم صحيح خبره نه ده ،ولې چې د دومره لوى قام د ژبې د بدلون هېڅ دليل نشته ، او که فرضا ژبه يې بدله وبولو ، نوبيا به دپښتو اصلي ويونکي چــــــــاته ووايو؟

۵ بله خبره داده چې دپښتنو او يهودو په اخلاقو ،عاداتو او هرڅه کې يو تر بله خورا ډېر توپير موجود دى .چې دغه خويونه او رواجونه يوهم په يهودو کې نه ليدل کېږي .

دپښتنو زړورتيا ، دازادۍ خيال ، لوړهمتي ، مېلمه پالنه ، دخپلواکۍ او استقلال روح په يهودو کې لاڅه چې په ډېرو قومونو کې نشته ، نو بنا پر دې په هېڅ دليل پښتانه بني اسرائيل نه بلل کېږي.

اريـــايـــي ژبـــه اوپـــښتو

دمخه مو د اريايې ژبووېشنه ولوسته اوتاسې ته څرگنده شوه،چې كومې،كومې ژبې د اريا له كورنۍ څخه دي، دا طبيعي اومنلې خبره ده، چې اريايې قومونوپه خپل لومړني ټاټوبي (اريانا وېجه)كې ځانته يوه ژبه درلوده ،چې له هغې ژبې څخه وروسته هندي،ايراني،اوبخدي ژبې راوتلې دي، په دې لومړنۍاريايې ژبې كې تراوسه څه معلومات د پوهانو لاس ته نه دي راغلي او نه چاڅه پكې ويلې دي ،يوازې دومره ويل كېږي ؛لكه دوى چې مذهب ،رسوم ،ملي دودونه درلودل ،نوښايې چې بېله ژبه به يې هم درلوده؛خودا نه معلومېږي چې اصلي اريايې ژبه كومه،څنگه،او څه ډول ژبه وه ،څومره عمر ژوندۍوه؟ ډاكتر گوستاولوبون وايې، تر خپرېدلو او هجرت دمخه اريايې قومونو يوه ځانگړې ژبه ويله ،چې نوم يې (ار يک) و،دا ژبه اوس وركه ده،خو سانسكرېټ او اوستا دواړه ژبې له دغې اصلي ژبې اريک څخه راوتلې دي

اوستا دهغواريايې قبايلو ژبه وه،چې له بلخ څخه د ايران خواوو ته تللي وو او سانسكريټ دهغو اريايې قبايلو ژبه وه،چې د هند پر لور كوچېدلي وو، مگر هغه اريايان چې څه پخپله باختر كې پاتې شول او څه د هندوكش شمالي او سويلي لمنو ته راغلل او تر اباسين پورې خپاره شول ، د دوى نوې او ځانته ژبه غالبا پښتووه،چې په دغه وخت كې د مركزي او بخدي اريايانو د كومې بلې ژبې معلومات په لاس كې نشته .

اريک اريايې ژبه چې د ټولو اريايې ژبومور يا انا بلل كېږي لا اقل ترميلاد (٣٠٠٠) كاله دمخه ويل كېده او د دوى مشتركه ژبه وه.

خو اوس يې هېڅ نښه اوبېلگه نه ده پاتې له دې امله چې د اريايانو تاريخ او ليكنې د مخ زېږدې تر (١٤٠٠) كاله دمخه ته رسېږي ، نو دومره ويلاى شوچې سانسكرېټ ،اوستا او زړه پارسو درې سره له دغې اصلي اريايې ژبې څخه زېږېدلې دي.

ميډيم راګوزن (Ragozin) ليکي: نږدې سل کاله د مخه په اروپا کې د هند د علومو پلټنه او زده کول پيل شول هغه وخت چې چارلس ولکنس (wilknis) مهابهارت وژباړه، او د سانسکريټ پښويه (ګرامر) يې وکيښ، نو سرويليم جونز د منو دهرم مذهبي شاستر کتاب وژباړه او کولبروک (Colbrovk) د هند پر فلسفه ،قوانينو او ادب باندې کتابونه وليکل ؛ نو د اروپا او هند د ژبو پرتله او مقايسه پيل شوه او دا فکر خلکو ومانه چې سانسکريټ د ټولو ژبو مور ده؛ مګر وروسته چې پلټنې او د پوهانو کتنې ډېرې شوې ؛ نو دا ښکاره شوه، چې تر سانسکريټ لا دمخه يوه بله ژبه هم اريايې خلکو درلوده؛چې په اصل کې هغه ژبه د نورو ژبو مور ده ، يوبل عالم جېکب ګرم په اريايې ژبو کې د صحيحو تورو د تبديل اصول وښودل ، او دا ثابته شوه،چې د اريايي قومونو لومړنۍ او اصلي ژبه لا بله وه چې د هغې ژبې الفاظ او ويې په ټولو اريايې ژبو کې مشترک دي.
د اصلي اريايې ژبې عمر د ژبپوهان (۲۵۰۰تر۳۰۰۰) مخ زېږدي پورې تخمين کوي، دوی وايي چې اريايي قومونه تر اباسين (انډوس) پورې وتل ،خپل نامتو ديني کتاب ويدا (Veda)يې په خپله ژبه انشا کړ، ددې کتاب د ليکنې پېښليک تر(۱٤۰۰) مخ زېږدي دمخه ځي؛د کوچنۍ اسيا د اريايې قومونو زاړه ليکونه هم د د (۱٤۰۰) مخ زېږدي په شاوخوا کې کښل شوي دي، که دهندي اريايانو کتابو ويدا له هغه ليکنو سره پرتله شي ،ژبې يې سره مخالفې دي خو د نومونو اشتراک يې څرګندېږي.
په دې دليل ويلای شو د(۱٤۰۰) مخ زېږدي په شاوخوا کې اريايې قومونو ژبې سره بېلې شوې وي او اصلي اريايې ژبه په دغه وخت کې نه وه ژوندۍ ، داخبره هم ژبپوهان مني ،څويوه ژبه په نورو فرعي ژبو اوړي،يعنې ځان ته بېلې ،بېلې څانګې مومي، لړترلړ يو زرکاله غواړي. نو په دې حساب چې مور دويدا او د کوی بوغاز د زاړه ليک له عصره يعنې د(۱٤۰۰)مخ زېږدي څخه زرکاله پخوا ولاړ شو،نوبه دا

ووايو،چې د (۲٤۰۰) په شاوخوا کې اريايې قومونو ژبه لا يوه وه،او لکه ځينې مورخين چې وايي ،دا ژبه له پارس اوميديا څخه تر پنجابه ويل کېده،او د امو شمالي خواوې سغديانه هم پکې شاملې وي.
نوددې اصلي اريايي ژبې عصر له (۲٤۰۰)مخ زېږدي څخه تر څلور زره مخ زېږدي پورې تخمين کېږي يعنې له هغه وخته چې اريايي قومونو لومړی پلا له (اريانا وېجه) څخه هجرت کاوه.
ددې اصلي اريايي ژبې کوم اثر او نښه ؛ لکه دمخه چې مو هم وويل اوس نه ده پاتې ؛ په راتلونکو ليکنو کې د پښتو نږدېوالی له دغې ژبې سره په ځينو علمي دلايلو زبادکړو او داخبره به زياته کړو،چې پښتو هغې اصلي ژبې ته خورا نږدې ده او لکه سانسکريټ او اوستا چې ځنې زېږېدلې دي. پښتو هم د هغې لور ده.
دمخه مو وويل چې اريايي قومونه له بخدي يا باختر څخه ختيځ اولوېديځ ته سره خپاره شول ، په هند او ايران کې يې مدنيتونه جوړ کړل او ځينې له دوی څخه په بخدي او د هندوکش په شمال او سويلي لمنو کې پاتې شول او وروسته په ټول هېواد کې سره خپاره شول . دا اريايان چې د مرکزي او باختري ډلې څخه دي ، ډېر قبايل او ډلې لري. چې يوه مهمه ډله يې د (بخت=پکهت=پښتون) په نامه يادېږي او پښتو ژبه هم دوی تر اوسه وايي، دا ژبه له قديمه دوی ته پاتې ده، او مرکزي اريايي ژبه چې له اصلي ژبې څخه دلې د اريايانو په خپل مرکز او کور کې زېږېدلې ده، همدغه پښتو ده، وروسته چې تاسې د پښتو او پښتون د نومونو په خصوص کې تاريخي څېړنې وگورئ ، دا خبره به ښه درته لوڅه شي ،اوس دلته هم د پښتو د ربط دلايل له اصلي اريايي ژبې سره لاندې راوړم.

## پښتو او اصلي ژبه (اريک)

دتاريخ اوعلمي څېړنو په استناد مو د مخه دا وويل ،چې پښتو داريک ژبې لور ده، ددې خبرې د پلټنې او منلو لپاره بايد موږ د اريايي توکم پخوانو کلماتو ته وګورو،چې له دوی څخه څه پاتې دي او هغه کلمې بيا په پښتو کې وګورو ،چې تر اوسه ژوندۍ دي.

بله دا خبره هم بايد دلته وشي چې ارين توکم له بخدي څخه يا دهند خواته ولاړل ،چې ژبه يې سانسکريټ شوه اود ويدا کتاب په دغه ژبه دی ،يا هغه قبايل دي،چې ايران ته ولاړل ،ژبه يې فرس قديم بيا پهلوي ،بيا اوسنۍ پاړسو شوه،اما هغه قبايل چې په خپله په بخدي کې پاتې شول کومه ژبه يې ويله؟

زما دا عقيده ده،چې دوی پښتوويله،ځکه چې وروسته دغه قبايل تر هندوکش راتېر شول ؛ دوی د بخدي په نامه (بخت=پکهت=پښتون)بلل کېدل او هغه تاريخي نوم دوی تر اوسه ساتلی دی اوهغه پخوانۍ ژبه هم دوی تر اوسه خوندي کړې ده.

دا مطلب به وروسته روښانه شي چې پښتانه يعنې د پښتو ژبې و يونکي هغه پخوانی بخدي،يا باختري اريايان دي،چې نورو ورووڼو يې د ايراني يا توراني يا مغولي يا هندي قومونو په تماس خپله اصلي ژبه هېره کړه ؛ مګر فقط ښاغلو پښتو تر اوسه ساتلې ده.

په دې کې هېڅ شک نشته چې بخدي اريايان (۱٤۰۰)مخ زېږدي يعنې هغه وخت چې دهندي اريايانوديني کتاب ويدا ليکل کېده ،د پکهت په نامه مشهور و، په خپله په ريګويدا (Rig-veda) کې هم د دوی نوم ذکر کېږي ؛ نوچې دغه ملت په دغه نامه موجود وي ، د دوی ژبه هم بايد موجوده وي.

له تاريخي اسنادو څخه ښکاره کېږي ،چې اريايي بخدي يا د پکهت قومونه پس له (۱٤۰۰) مخ زېږدي د هېواد ختيزو غرو او د اباسين غاړوته تللي او دلې مېشته وو؛ځکه چې ريګويدا د دوی نوم د هند په يوه مشهورجنګ کې ذکر کوي او هم وروسته (۱۰۰۰) مخ

زېږدي په بخدي يا باختر کې يوه بله ژبه پيدا کېږي چې زند يې نوم دی او د اوستا مشهور ديني کتاب په دغه ژبه دی او بيا هغه وخت چې هېرودوټ (Herodotus) يوناني مورخ د پکهت او پاکتويس ذکر کوي ؛ نو د (٥٢٠) مخ زېږدي په حدودو کې هم دوی د اندوس (اباسين) پر غاړو شيې.
له دغو تاريخي ملاحظاتو څخه موږ دې پايلې ته رارسېږو ،چې پښتانه اريايان لومړی په بخدي کې اوسېدل ،له هغه لومړني تاټوبي څخه دوی د هغه ځای په نامه (پخت=پکهت) له خپلې زړې ژبې سره د (١٤٠٠)تر(١٠٠٠) مخ زېږدي پورې د اباسين غاړو او دهېواد ختيزو غرو ته لاړل ، دوی خپل د( بخدي =پکهت) نوم سره له خپلې ژبې وساته او تر اوسه هم په دغه نامه او دغه ژبه مشهور دي.

## په پښتو کې د(ارين) او (اريا) دکليمې جاج

تاريخ پوهان وايې هغه قامونه چې د امو له غاړو څخه په باختر ايران او هند کې خپاره شول دوی ځانونه ارين گڼل ، دا ويی په سانسکرېټ کې (اريا) او په اوستا ژبه کې اريا راغلی دی پخپله په رېگويدا او اوستا کې دغه نوم داسې راغلی دی ((سترڅښتن د ارين ځمکه او توکم پيدا کړ.
د اروپا په اصطلاح کې (ارين، اريا) د هغو لرغونو قومونو نوم دی چې ژبې يې سره نږدې وې او څو زره کاله پخوا په اريانا وېجه کې اوسېدل .
د اريا او ارين کلمه د اصيل ، نجيب او کروندگر په مانا راغلې ده په دې اړه جرمنی ژبپوه گايگر وايې چې ارين له ار څخه مشتق دی چې په سانسکرېټ کې اصل او بنسټ ته وايې او اريا د شريف او نجيب مانا ورکوي.
ميکس مولر له ارين څخه د کرونکي او زارع مانا اخلي په پخوانيو ارينو کې زراعت او کرنه يو شريف کسب و، نو ځکه کرونگر شريف گڼل کېدل.

په پښتو ژبه کې د ارين او اريا د کليمو پخه رېښه موجوده ده او دغه ماناگانې پکې په بشپړ ډول سمون خوري.
۱_ ار[4] د اصل او بنياد په مانا يوه کارېدونکې کلمه ده او په پښتو ادب کې راغلې ده. ملا الف هوتک ۱۰۱۹ هـ وايي:

دی له اره و شاغلی
څه که شو په وير نتلی

پيرمحمد مياجي وايي:

شېخ متي چې خليلي و
دی له اره لوی ولي و

نو اره د اصل او بنياد په مانا د پښتو پخوانۍ کلمه ده ، چې تر اوسه هم ژوندۍ ده، او په دې مانا د دوکتور گېگر جرمني له قول سره مطابقت لري چې دی هم اره اصل او ارين اصيل گڼي.
۲_ که د (ار) دويمه مانا يانې کښت او کرونده د ميکس مولر په قول واخلو ده هم کټ مټ په پښتو کې تر اوسه شته په کندهار کې کروندگر د لو په وخت وايي (اره ،اره لور پرغاړه) په دې غونډلې د کروندگرو حال بيانېږي چې لومړی کښت کوي اوبيا يې رېبي ، نو اره په دې محاوره کې خاص د کښت او کرنې مفهوم لري چې د هنټر او ميکس مولر له قول سره سم دی .
نو ارين که په لومړۍ مانا اصيل وي هم په پښتو کې شته او که په دويمه مانا کروندگر او زارع وي هم په پښتو کې تر اوسه کارېږي.
حتی تر دې چې د ارين ويی د پښتو له گرامر سره سمون او مطابقت لري، (ين) په پښتوکې خورا ډېرد نسبت د اداتو په ډول راځي او د کليمو په پای پورې نښلي د بېلگې په ډول خاوري= خاورين، ورېښم = ورېښمين ، نوکه اره کلمه راواخلو او دپښتو له

[4] The term Aryan originates from the Sanskrit word ārya , in origin an ethnic self-designation, in Classical Sanskrit meaning "honourable, respectable, noble"

دغو اصولو سره سم د نسبت (ین) پورې ونښلوو هغورځي او ارین ځینې جوړیږي
د اریا کلمه هم کټ،مټ په پښتو کې کاریدله،

## اریا ورته= اریا ورشه

د ولسون (Wilson) په قول ددې کلیمې مآنا د آصیلآنو ټاټوبی دآ نوم په لومړیو کې د آمو شآوخوآ سیمو ته ویل کېده ، بیآوروسته چې آریآ هند ته لآړل دآ نوم یې له ځآنه سره یووړ، هلته یې په خپل لوی ټاټوبي کېښود،دآنوم لومړی پلآ په (منوسمهیتآ) نومي کتآب کې رآغلی چې درې سوه مخ زېږدي کې لیکل شوی دی . ددې کلیمې لومړی توکی (آریآ) آو دویم توکی یې ورته یآ ورشه دی چې د ځآی آو مسکن مآنآ ورکوي ، ، ورشه آوس هم په پښتو کې د ورشو په بڼه موجود دی چې څړځآی ته ویل کېږي ورته هم شآید د (ت) آو (س) په بدلون په ورشو آوښتی وي ،

پښتو او سانسکرېټ

مخکې له دې چې د پښتو او سانسکرېټ په پرتلنې او تړاو وغږېږو د سانسکرېټ د ژبې په اړه په لږ څه سپړلي ډول وغږېږو.

د سانسکریټ د ویې مانا مهذبه،اوبشپړه او سمه کړې ده، د خپله نامه سره سمه دغه ژبه د ویدي ژبې (دویدونو د ژبې) چې ویدا ویې د (ود) له مصدره جوړه شوې او د پوهنې په مانا ده، ودیا په عمومي ډول علم ته وایې. چې څلور ویدونه وجود لري چې په دې ډول دي ، ریګویدا[5] (Rig veda) ، ساماویدا ( Sama

---

[5] The Rigveda ( Sanskrit : ṛgvedá , a compound of ṛc "praise, verse" and veda "knowledge") is an ancient Indian sacred collection of Vedic Sanskrit hymns . It is counted among the four canonical sacred texts ( śruti ) of Hinduism known as the Vedas . Some of its verses are still recited as Hindu prayers, at religious functions and other occasions, putting these among the world's oldest religious texts in continued use

It is one of the oldest extant texts of any Indo-European language . Philological and linguistic evidence indicate that the Rigveda was composed in the north-western region of the Indian subcontinent , roughly between 1700–1100BC (the early Vedic period ). There are strong linguistic and cultural similarities with the early Iranian Avesta , deriving from the Proto-Indo-Iranian times, often associated with the early Andronovo (Sintashta-Petrovka) culture of ca. 1600-2200B

(veda) ، يـجرويـدا (yajur veda) ، اتـهروايـــدا (Atharva veda) څخه عبـارت دي ،چې د همدې ويـدونـو د ژبـې لـه سمولـو څخه پـيدا شوه، پـوهان پـه دې خبـره كـې اخـتلاف لـري ،چې ايـا كـوم وخت سانـسكـريـټ ژبـه ويـل كېـده كـه نـه؟خو دا ښكاره ده ،چې سانـسكريـټ يـوه پخوانـۍ علمي او ارتـه ژبـه وه، پـه سلـګونـو كـتابـونـه لـه پخوانـو زمانـو څخه پـه دې ژبـه كې پاتـې دي؛ځكه چې ددې ژبـې ادبـي او علمي نـښېرونـه (اثـار) ډېـر دي اود زمـانـې لـه يـرغلـه هم ساتـلې پاتـې شوي دي ،لـغات او كـلمـات او قـواعد يـې هم ټـول شـوي او لـيكـل شـوي دي ؛نـود اريـايـې ژبـو د مقـايـسوي فـيلالـوژۍ لـپـاره ډېـر قـيمـت لـري ،كـولاى شو ،چې د يـوې ژبـې اساس د سانـسكريـټ لـه مقـايـسې څخه معلـوم كړو.

د سانـسكريـټ نـوم او ددې ژبـې سـمول نـسـبـتا نـوى كـار دى ؛ پـانـېـنـي (Panini) (۱۲۰) مخ زېـږدي كـال د اټـک پـه حـدودو يـو معـروف عـالـم او د ويـدي ژبـې پـوهانـد و،دې سړي هغه ويـدي ژبـه سره سمه او مهذبـه كړه ،صرف او نـحوه يـې ورتـه تـرتـيـپ كړه ،نـوم يـې سـن (سم) او دويـم تـوكـى كـريـټ ( كـړې) يـعنـې سمه كـړې ژبـه پـرې كېښود ،وروستـه دا نـوم مشهور شو او دغـې ژبـې تـه يـې سانـسكريـټ[6] (Sanskrit) يـعنـې بـشپړه او سمه كـړې ژبـه (the perfected) وويـلـه..

اوس بـه راشو دې تـه چې سانـسكريـټ او پـښـتـو اريـايـې ژبـو تـه سره پـه كـومـو،كـومـو بـرخوكې ورتـه والـى لـري

د پـښتـو او سانـسكريـټ د ويـونـو يـو ډول والـى

د ويـونـو پـه پـرتـلـنـه كـې دري ډولـه لـغات تـرڅېړنـې لانـدې نـيـسو

۱- چې د دوو ژبـو ويـونـه كټ مـټ يـو ډول وي او څـه تـوپـير ونـه لـري :لـكـه انـګـار چـې پـه پـښـتـو او سانـسكريـټ دواړو كې د اور او سكروټـو پـه مانـا دى

[6] Sanskrit (saṃskṛtam , properly saṃskṛtā vāk , later also saṃskṛtabhāṣā , "refined speech"), is a historical Indo-Aryan language and the primary liturgical language of Hinduism and Buddhism. Today, it is listed as one of the 22 scheduled languages of India] and is an official language of the state of Uttarakhand . Sanskrit has been declared a classical language by the Government of India

جال چې په پښتوکې هم جال دی.همدارنګه اپت چې په پښتو کې هم اپت دی.

**۲-** هغه دي چې یوتر بله پکې لفظي تغیېر موجود نه وي، لکه د سانسکرېټ سپیته چې په پښتو کې سپین دی ،دسانسکرېټ پرې واتن په پښتوکې پرې وتل ، د سانسکرېټ لیکنهم دپښتو لیکل، د سانسکرېټ مننم د پښتو منل، د سانسکرېټ نو د پښتو نوی ، دسانسکرېټ جماکه دپښتو ځمکه،د سانسکرېټ مستودپښتو مستي، مخا د سانسکرېټ د پښتو مخ، د سانسکرېټ جاني د پښتو جینی، دسانسکرېټ ماکس د پښتو مچ دسانسکرېټ اورتن د پښتو اوښتل، دسانسکرېټ،کهنم د پښتو کیندل د سانسکرېټ ستوتي د پښتو ستایې،دپښتو خوسر د سانسکرېټ شوسر، .دپښتو شپه د سانسکرېټ شپا د پښتو اپت د سانسکرېټ اپت ،د پښتو شولې د سانسکرېټ شالي دپښتو ژور د سانسکرېټ ګهور .همدارنګه دبېلګې په دول د پښتو له یو څخه تر لس پورې شمېره به د سانسکرېټ له شمېرو سره پرتله کړو.

| پښتو | سانسکرېټ |
|---|---|
| یو | اکم |
| دوه | دو |
| درې | تریني |
| څلور | چتواري |
| پنځه | پنج |
| شپږ | شت |
| اووه | سیت |
| اته | اشتو |
| نهه | نو |
| لس | دش |

## یادپښتو او سانسکریټ په رتبي عددونوکې سره ورته والی په دې ډول دی

| پښتو | سانسکریت |
|---|---|
| پنځم | پنجم |
| شپږم | ششتم |
| | اووم |
| | سپتم |
| | اتم |
| | اشتم |
| | نهم |
| | نووم |
| | لسم |
| | دشم |

نو له دې ټول پوره او څه ناڅه یو دول والي څخه دا پایله په لاس راځي چې پښتو یوه اریایې ژبه ده او له سامي او نورو ژبو څخه نه ده راوتلې .اویوه سوچه اریایې ژبه ده.

## پښتو او اوستا

تر دې مخکې چې د پښتو اواوستا د یوډول والي او پرتلنې باندې رڼا واچوو، په دې به پوه شو چې اوستا څه ډول ژبه ده او څه وخت پرې خلک ګړېدل.
اوستا ژبه هم لکه سانسکریټ له پخوانیو اریایي ژبوڅخه ده، اودپښتو له ادبي تاریخ سره ډېره اړه لري، اوستا د اریایي باختر او بخدي یوه زړه ژبه ده ، چې موږ یې له پښتو سره ډېر ویونه او لغات مشترک مومو، او لکه د پښتو اړیکه چې له سانسکریټ سره ټینګه ده ، د اوستا سره هم داسې کلکه اړه لري.

په حقيقت کې دا درې ژبې (سانسکريټ، اوستا او پښتو ) سره خوندې دي او په يوه هېواد کې زېږېدلې اوروزل شوې دي ، سانسکريټ د هند په پراخو ورشوگانوکې خپره شوې او اوستا په باختر کې ځوانۍ ته رسېدلې ده، پښتوله پښتنو او پکهت سره يو ځای تراوسه ژوندی پاتې ده .
اوستا ژبه يا زند (Avesta, Zend) چې مقدس کتاب نوم هم دی او د لارښودنو مجموعه ده، ډارمسټټر پوه يې مانا (سرود شوې ) بولي برتانوی پوهنغوند ليکي چې د اوستا لرغونی صورت اويستاک و، دا ژبه په باخترکې له زړې اصلي اريايې ژبې څخه د ويدي ژبې سره يو ځای او غبرگونې وزېږېده، نويې باختري ژبه هم بولي ، اوستا يې ځکه بولي چې چې د اوستا کتاب پخوانی او خورا زوړ ټوک (گاته) په (۱۰۰۰) مخ زېږدي کې په دغه ژبه د (بخدي_بلخ) په ځمکو کې ليکل شوی دی، دغه ژبه زند هم (Zend) بلله کېږي.
مدقفين وايې د اوستا ژبې چې گاته پر ې ليکل شوی دی اوو د ويدا ژبې ډېر توپير نشته او په جزوي اړولو اوتبديل سره چې معين اصول لري ،ديوې ژبې يوه خبره په ها بله ژبه اړولی شو.
داوستا ژبې په روحاني ډله او مقدسو کتابو اړه درلوده او بېله په خپله اوستا بل کتاب او ليک په دغه ژبه نه دی پاتې ،که څه هم د اوستا کتاب او زرتشت دين په ايران کې خپاره شول مگر تر ايراني هخامنشي دورې (۷۳۰_۳۳۰) مخ زېږدي وروسته چې مقدوني سکندر په اسيا مسلط شو؛نو د اوستا نسخې هم ورکې شوې مگر وروسته بيا د اردشېر سلماني (۲۱۱_۲۲٦ز) په امر اوستا راغونډه شوه؛ نوله دې امله اوس د اوستا زوړ متن نه دی پاتې ؛يوازې د گاته برخه يې زړه او د زرتشت قول بلل کېږي .
دا ژبه اوستا بلل کېږي په حقيقت کې زند د اوستا دکتاب پهلوي شرحه ده ،چې وروسته دا دوه نومو نه په گډه (زنداوستا) دمتن په اصلي ژبه اطلاق شوه. که نه وي په خپله زند د اوستا د تفسير ژبه يعنې پهلوي ده.

داوستا کتاب د غوایې په دولس زرو څرمنو لیکل شوی و، دا کتاب زرتشت په بخدي کې ولیکه او دهغه وخت باختري پاچا گشتاسپ د زرتشت دین ومانه او د زرتشت ټول قوانین یې د غوایو پر څرمن ولیکل او هرې خواته یې ولېږل ، دې کتاب ته ډېرې صدمې رسېدلې دي ،څو واره ورک شوی ، سوځېدلی دی، او بیا سره ټول شوی او ډېر نوي نوي مضامین وروسته هم پکې داخل شوي دي ، یعنې دا کتاب پر پخواني حالت نه دی پاتې .

دساسانیانو په دوره کې له (٦٢٩ز) پورې چې زرتشتي دین رسمي گڼل کېده ، د اوستا ټول کتاب (٢١) نسکه و، نسک په اوستا کې نسکه ذکر شوی چې مانا یې ټولگه ده، دغه یوویشت نسکه په درې برخو وېشل کېږي چې هره برخه یې اووه نسکه ده، ،لومړی برخه یې گاته (Gatha) بولي.

د بخدي کلمه چې په اوستا کې راغلې ده معلومېږي ،چې د اوی (بخد=بخدت=بخت=پښت=پکهت)سره نږدې اړیکې لري او تقریبا یو شی ښکاري .بخدي د بلخ پخوانی نوم دی ،دا ځای د اریایې نسل مرکز و، چې په اوستا کې ښایسته بلخ او د جگو بیرغونو ښار بلل شوی دی.

که څه هم (بخدي) د وطن او ځای نوم دی ،مگر کېدای شي چې په اصل کې د اوستا (بخدي) او د ویدا(پکهت=پخت) سره یوشی وي او بیا وروسته د (ی) په زیاتوالي بخدي د ځای او سیمې نوم شوی وي. بلخ په سانسکرېت کې (بلهیکا) په پهلوي کې د (بخلی یا بهل) او په زړه پاړسي کې د (باختر) په نومونو یاد شوی دی.

دا ټول نومونه په رېښه او ځېله کې د (پښت )سره پوره نږدېوالی او اړیکې لري ، د فلالوژي پوهانو هم دا خبره منلې ده، چې د (بخدي-بختي-پښتي=پښت=پکهت) نومونه ټول یو دي ولې چې (ب،پ) او (د،ت)همېشه پر یو بل بانديې بدلېږي او دا بدلون په اریایې ژبو کې عام دی

(بلخ) د عربو له خوا هم د (بخت) په نامه یاد شوی دی ،ځکه چې دوی به د (بلخ او باختر) اوښانو ته بختي اوښان ویل ،یعني (بخت او بلخ) ته به یې منسوبول .

په اسلامي تاریخونو کې هم دغه اوښان په (بختي اوښانو)

یاد شوي دي ، له دې نه معلومېږي چې د (بخدي =بخت=پښت=اوپښتون) په کلیمو کې پوره ارتباط او نږدېوالی موجود دی او رېښې او ځېلې یې یو له بله نښتې دي.

اوس چې د اوستا په باره کې څه ناڅه پوه شو نو د پښتو او اوستا ګډو ویونو ته به راشو،چې هم د اوستا په لرغوني کتاب کې دي او هم په پښتو کې کارول کېږي

| پښتو | اوستا |
|---|---|
| څرمن | چومن |
| کله | کرا |
| جینۍ | جینی |
| ژمی | زیم |
| ستن | ستونه |
| اس | اسپا |
| ګرمي | ګرمه |
| ځمکه | زیم |

| مرغه | میریګه |
|---|---|
| ونه | ون |
| ژوندی | جوند |
| نېکه | نیاکا |
| هېواد | هرمن |
| واوره | وفره |
| سپین | سپینه |
| لېور | دیور |
| لېوه | دیوه |

پرينا پانه

لنډه داچې له دې ټولو پرتلنو په څرګند ډول معلومېږي چې پښتو يوه اريايي ژبه ده ،چې زرګونه کاله مخکې هم د اريانا د لرغوني سيمې خلکو پر ې خبرې اترې کولې.
د پښتوژبې د اريايي توب ښکاره دليل دادی چې په څلورو وېدونو او اوستا کې يې د مېړاني او شهامت ذکر راغلی دی څنګه چې د پښتون ذکر راغلی نو ښکاره ده،چې د پښتنو ژبه پښتو وه ،چې اوس هم پرې د الله(ج) په دې پراخه نړۍ کې پرې ګړېږي.

## پښتو په ويدا کې

په ريګويدا کې پکتها د پښتنو د پاچا په ډول اوپکهت د قوم نوم څو ځايه او مکرر راغلی دی هغه انګرېزي ژباړه،چې د اروپا نامتو هند پوهاند او ختيځ پوه (رالف ټي ايچوګرېفټ) (Ralph,T,H, Griffith) له ويدا څخه په دوه ټوکه کې کړې د پکهت ذکر په دغو ځايونو کې راغلی دی.
(۱) دويم ټوک ،۱۸ مخ، اوومه برخه_ ۱۷_سندره
(۲) دويم ټوک،۱۵۳مخ،اتمه برخه_۲۲_سندره
(۳) دويم ټوک،۲٦۰مخ،اتمه برخه_۱_سندره
(٤)دويم ټوک،٦٥مخ ،لسمه برخه_٦۱_سندره.

## پــايـځور

پښتو ژبـه
افغانستان چې دپښتو ژبې او پښتنو دکورحيثيت لري پښتو ئې تر بل هرځائې ښه پاللې ده په افغانستان کښې په سلو کښې اويا اوسيدونکى پښتانه دى چې نه يوازې پرې خبرې کوى عن چې له ښوونځيو نيولې تر پوهنځيو پورې لومړنى مينځنى اولوړې زده کړې پرې ترسره کيږى پښتود افغانستان ملى، رسمى او دولتى ژبه ده دا چې د پښتنو کور افغانستان دنړى په ډيره اهمه سيمه کښې پروت دى دخپل اهميت له کبله دهندوستان دفتح راز پاتې شوى او کله دمنځنى اسيا دلاندې کولولنډه لاره ځکه خووخت ناوخت دحوادثو ښکار شوى دى.

له ډيرويرغلګرو اوپراختيا غوښتونکو سره مخامخ شوى چې دهمدې بلوڅګرو سره ئې د درنو اواوړدو ټکرونو په نتيجه کښې ډيرې ستونزې اوناخوالې ګاللى اوزغملى دى دپښتون قام تاريخ اکثره له پرديو بلوڅګرو سره په مبارزه او مجاهده کښې تير شوى دى کله سکندر له يونانه پرې بلوڅيدلى کله چنګيز ګوبى له دښتو او ډاګونو څخه کله انګريز دپښتنو دمرى کولواويشلو په نيت پرې يرغل کړى اوکله هم روسانو تودو اوبو ته د رسيدو په نيت پرې جګړه تپلې ده دنړى هر زبرځواک ته دپښتنو دلاندې کولو شوق خامخا پيدا شوى دى خپل زور ئې په بشپړه توګه ازمايلى دى خوالحمدلله ترننه دنړى هيڅ ښکيلاکى ځواک دپښتنو په ايلونو نه دى بريالى شوى هر يو په ډيرو غورځو، پرزو راغلى خوڅه وخت وروسته ئې نه يوازې تيښته کړې اومات شوى دى ټوټه شوى هم دى. چې تاريخ ئې ډير مثالونه په خپله لمن کښې لرى. کله چې پښتون مشر حاجى ميرويس خان نيکه د صفويانو ۱۵۰ کلن ښکيلاک په ۱۱۲۰ هـ کښې مات کړو

اودپښتنو په لاس ئې يوځل بيا دافغانى دولت بنسټ کيښود بيا دامير عبدالرحمان خان تر امارته پورې دهر پاچا، سلطان اوامير دربار دپښتنومشرانو اوپښتو ژبې ځائې اومرکز ؤ.
که څه هم چې له ۲۵۰ کالو راسې پښتو ژبې د بهرنيو دکلتورى يرغلونو له کبله يوخوا اود پښتنومشرانو دبې حسۍ او بې پروايۍ له کبله له بلې خوا پرلپسې زيان ليدلى دى چې ورو ورو له خپله مقامه راټيټه کړى شويده.
لکه دپښتون پاچا تيمورشاه په وخت کښې چې زمونږ مورنۍ ژبې قلار قلار له درباره په شړل کيدو شوه اوپه ځائې ئې دنورو ژبو نيول پيل شول ګواکې دپښتنو دربار ته نورې ژبې هم دننه شوې چې په نتيجه کښې له پښتو ژبې څخه پام په بله خوا واړول شو.
که څه هم په افغانستان کښې دتيرې عيسوى پيړۍ په بهيرکښې زمونږ مورنۍ ژبې ته ډير کار وشو دپښتو ژبې دنوميالو شاعرانو، ليکوالانو، پوهانو او عالمانو کتابونه چاپ شول ورځپاڼې او مجلې ئې چاپ شوې له نورو بډايو ژبو څخه ارزښتمند اثار په مورنۍ ژبه وژباړل شول په راډيو اوتلويزيون کښې په خپريدو شوه په ښوونځيو اوپوهنځيو کښې ئې زده کړه پيل شوه دحکومت او دولت ټول رسمى نومونه په پښتو ونومول شول پښتو ټولنه دپښتوژبې دلازياتې ودې او پرمختګ لپاره رامينځ ته شوه ډير پوهان او عالمان پرې وروزل شول.

خو له بده مرغه چې تيرو شويو جګړو ټول غميزې زيږولى دى په دې ډول له روسانو سره دپښتنو ميړنۍ اوخونړۍ جګړې او بيا ورپسې وروستۍ بدمرغې کورنۍ جګړې او دپښتنو نوروغليمانو زمونږ مورنۍ ژبې ته نه زغمونکى زيانونه واړول دجګړې په دوران کښې ډيرپښتانهٔ هجرت ته اړ شول پښتنو هغو سيمو ته هجرت وکړو چرته ئې چې، ژبنى، مذهبى، کلتورى او تاريخى اړيکې او ريښې درلودې په دې لړکښې زيات

شميـر پـښتـانـهٔ لـويـديـز تـه هم لاړل هلـتـه ميشته شول چــې زمـونـږ سره ئـې دراتـلـونكى پـه اړونـد انـديـښنه شتـه چې پـه خپل ځـائـې زمـونـږ لـپـاره پـه راتـلـونكى كښې لـه خطره تـشه نـهٔ ده دغو پـرلـه پـسـې حوادثــو اوټـكرونــو تـربــل هرچا پـښتون اوپـښتو ژبـه ډيـره زيـانـمنه كړه لـه بـــده مـرغه پـښتـنو هم دخپـلې مـورنـۍ ژبـې حق لـكه څرنـگـــه چــې پـكاردى نـه دى ادا كړى پـه داسې حـال كښې چــې دنـــړۍ هربـيـدار قـام دخپـلې مـورنـۍژبـې ډيـــر زيـــات چوپـړكـــوى. افـغـان سيد جمال الـديـن وائـى دهر مـلت چې ژبـه ژونـدۍ وى هغه مـلت هــم ژونـــدى وى نـوكـــه چــرې پـښــتون قـــام رابـيـدار نـشى همداسې اودهٔ پـاتـې شى نـو خدائـې مـه كړه پـه لـرې راتـلـونكې كښې بـه زمـونـږ مـورنـۍ ژبـه پـه مـــرگ محكومــــــــــــــــــه شــــــــــــــــــــى.

دخدائـې لـپـاره نـن سبـا پـه لـر او بـر كښـې ډيـــر داســې مشران پـوهـان اوعالـمان شــتـه چــې پـښــتو وئـيـلــى شــى خولـيـكلى اولـوستلى ئـې نـشى يـاخو ئـې بـيـخى نـه وئـيـلـــى شى نـه ئـې لـوستلى شى اونـه ئـې لـيـكلى شى چې دمشـــرانـو داحـال وى دراتـلـونكى كهول دې خدائـې مل شـــى پـــه دې تـوگـه مـونـږ نـهٔ خپـلې ژبـې تـه ښهٔ وده وركـولـى شو اونـــه پـرمختـــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــگ.

كـــــــــه داغفلــــــــــت وى پـښـــــــــتون وركيـــــــــــــږى
چـــــــــې پـښــــــــتولاړه پـښـــــــــتون ډوبيـــــــــــــږى
تـلـلـــــــــى خــــــــوتـلـلى دى خيرونـــــــــه غــــــــــواړه
پـرپـــــــــاتـې قـــــــــام مــــــــــې اوس .زړهٔ رپيـــــــــــږى

مـورنـۍ ژبـه پـه مـونـږ ډيـر حقـونـــه لـــرى لازمـــه ده چــې ورتـه ور ئـې كړو خوپـه زغرده وايـو چې پـښتـانـه دخپـلـــې مـورنـۍ ژبـې پـه اړه يـوې ټـولـنيـزې ملـى اوهــر اړخيـــزې بـيـدارۍ تـه اړتـيـا لـرى پـكارده چــې پـښــتـانـه لـــه خپـــل تـاريـخ او ويـاړونـو څخه خبـر كړى شى بـايـد چې دمورنـۍ ژبـې پـه ارزښت پـوهه كړى شى داسې شـعور رامـــنځ تـــه كړى شى چې دهمدې شعور پـه وسيـلـه د خپـلې مـورنـۍ ژبـــې ريـښتنى خدمت وكړى شــو چــې تـرهرڅــه وړانـــدې مـــونـږ اوزمــــونـږ مشـــران پـوهـــان او عـالـمــان پـښــتـانـه شـــى بـيـازمونـږ كورنـى پـښتنې شى اوپـه پـــائـې كښــې زمـــونـږ ټـولـنه پـښتنه شى هر پـښتون، چې دنـړۍ پـه هرځـائـې كښــې

ژوندكوى بايد پښتو ووئيلى شى وليكلى شى اوولوستلى شى.
هركله چې پوهان اوعالمان خپله پوهه اوعلم زمونږ سره په خپله مورنى ژبه گډ اوشريک كړى له نورو نړيوالو ژبوڅخه اړين كتابونه وژباړل شى په ورځنى ژوند كښې دمورنى ژبې خيال وساتل شى ليكل او لوستل پرې عام شى هرافغان ئې دخپل دفتر او دوكان په لوحه وليكى پرې ووياړى دپرديو دكلتورى يرغل سره په كلكه مقابله اومبارزه وكړى نوطمعه كيدى شى چې زمونږ مورنى ژبه امانته اوسلامته اولاډيره بډايه راتلونكى كهول ته په ميراث پاتې شى.

په دې ډول به مو دخپلې مورنى ژبې حق هم تريوه ځايه اداكړى وى راتلونكى كهول ته به مو هم دير څه وركړى وى تاريخ ته به هم سرلوړى اوسو او دپښتون مدنيت په رابيدارولو اوپه پښو درولو كښې به مو هم خپل كردار ترسره كړى وى.
پښتو يوازې ژبه اوپښتون يوازې ديو قام نوم نه دى دايو مدنيت دى چې اوږد اوځلاند تاريخ لرى پكار ده چې خپلې تجربې سره گډې كړو يوبل ته سره نزدې شو چې وكولى شو د راتلونكى له طوفانى يرغلونو څخه خپل قام اوخپله مورنى ژبه سلامته وژغورو پښتون دخپل ځيگ فطرت اوتاريخى رسالت له مخې ډير پخوانى چالاک اوكينه ناک دشمنان لرى چې تل ئې زمونږ د را ايلولو اوويشلو ارمان درلودلى دى.
ځكه چې پښتون له زرگونو كالو راپه ديخوا داسيا په زړۀ واكمن دى اوترننه ئې په حيرانوونكې بڼه له دې زړۀ څخه ننگه اوساتنه كړيده.
علامه اقبال وئيلى دى چې.
اسيا يک پيكر اب وگل است
ملت افغان درين پيكردل است
ازفساد اوفساداسياست
ازگشاد اوگشاد اسياست

پښتو د حاجي ميرويس خان په دوره کي:
د ميرويس نيکه درنې کورنۍ نه يوازي د پښتو پالنه کړې ، بلکي د پښتو ژبې ښه شاعران هم وه . د ده په دوره کي د پښتو ښه شاعران و روزل شوه لکه سيدال خان ناصري ، ملا پير محمد، بابو جان بابي، داود هوتک، ملا نور محمد غلجی او نور.

پښتو د شاه حسين په زمانه کي:
د شاه حسين په زمانه د پښتو د خدمت په باب د تاريخ يوه ځلانده دوره ده . د ده دربار د پښتو ژبې د ادب ښه زانګو ګڼل کيږي . د ده په امر د پښتو ژبې د شاعرانو تذکره ( پټه خزانه ) و ليکل شوه چې د پښتو د ادب تاريخ يې ۱۳ سوه کاله مخکښي زمانو ته و رساوه.

پښتو د احمد شاه بابا په زمانه کي:
پښتو ژبه په ادبي لحاظ د احمد شاه بابا ( چې د پښتو ژبې شاعر هم وو ) او د ده د اولادې ، تيمور شاه او شاه زمان په وختو کي پالل شوې ، مګر په حقيقت کښي د تيمور شاه له خوا له کندهاره د سياسي مرکزيت لېږدول و کابل ته د پښتو د پرمختګ له پاره لويه صدمه وه چې جبيره کول يې ګران شول.

پښتو د امير دوست محمد خان په زمانه کي:
د امير دوست محمد خان په کورنۍ کي د پښتو ژبې کلکه مينه پرته وه ، د همدې مينې په اثر د ده ورونه سردار مهردل خان او سردار پردل خان د پښتو ژبې خوږ ژبې شاعران وه.

پښتو د امیر شیر علي خان په زمانه کې:
د اعلیحضرت امیر شیرعلي خان په وخت کښي پښتو ژبې ته په رسمي ډول خدمت شروع شو . ټول عسکري ، ملکي او د کابینې د غړیو نومونه یې په پښتو واړول . د هغه وخت ځینې عسکري قوماندې چې په پښتو شوي وې لا تر اوسه ژوندئ دي لکه ( تیار سئ ، ولاړ سئ ، درېږ ) او نور .

پښتو د امیر عبدالرحمن خان په زمانه کښې:
اعلیحضرت امیر عبدالرحمن خان د پښتو سره بې مینې نه وو . د ده په امر د عبدالقادر خټک اثر )یوسف او زلیخا ( په سلطنتي مطبعه کښې چاپ شو.

پښتو د امیر حبیب الله خان په زمانه کې:
د اعلیحضرت حبیب الله خان په وخت کښي د پښتو په باب یو لوی گام واخیستل شو او هغه دا چې پښتو ژبې د معارف په تعلیمي نصاب کښي ځای و نیوئ او د ښوونځي په درسي پروگرام کي رسمي داخله شوه . مولوي صالح محمد لومړی درسي کتاب و لیکئ چې بیا په لاهور کښي هم چاپ شو . په سراج الاخبار کښي د پښتو مضمونونو چاپول شروع شوه.

پښتو د پاچا امان الله خان په زمانه کې :
د اعلیحضرت امان الله خان پښتو ته خاصه توجه وه . دوی د پښتو د زده کړي او تعمیم په غرض )پښتو مرکه ) نومې ټولنه جوړه کړه ، چې د هیواد د ټولو قومونو فاضلانو او عالمانو گډون پکښي کړئ وو . پدغه وخت کي د پښتو د پاره گرامري قواعد ولیکل شوه ، لغوي پانگه او د اصطلاحاتو ذخیره یې را ټوله کړه شوه ، نوي نومونه او اصطلاحات هم جوړ شوه . د پښتو کتابونه ( یوازنی پښتو ) ، ( پښتو پښویه ) ولیکل او چاپ شول . طلوع افغان ورځپاڼي چې په دري ژبه یې مضمونونو خپرېدل په پښتو ژبه هم د مضمونونو په خپرولو پیل و کړ چې ورو ورو ټوله پښتو شوه.

پښتو د اعلیحضرت نادر خان په زمانه کې:
د اعلیحضرت نادر شاه په وخت کي پښتو مرکه په (

پښتو انجمن ) واوښته او بيا مرکز ( کابل ) ته را نقل او د ( کابل ادبي انجمن ) په ګډون په ( پښتو ټولنه ) واوښت . پدغه وخت کي د پښتو د پراختيا د پاره کار پيل شو .

پښتو د اعليحضرت محمد ظاهر خان په زمانه کي:

د اعليحضرت محمد ظاهر خان په زمانه کي کله چې سردار محمد داود صدراعظم سو نو پښتو ژبې ته زياته توجه وکړه . هغه دا چې د دولت ټول کار کوونکو ته يې په اجباري ډول د پښتو ژبې د زده کړي امکانات برابر کړه که څه هم ژبه به يې پښتو وه . د ژبې د کورسونو تر لوستلو وروسته په ازموينه کي تر بريالي کېدو وروسته يې مياشتنی معاش د پنځوسو افغانيو په اندازه ور زياتاوه .

د چيپتر د لومړی برخې پای